(۵)

8/1968

۱۳۴۷



## ددې ګڼې مضامين







د غاليو اوبدلو لرغوني صنعت چې دافغانستان دمهمو لاسي صنايعو څخه شمېرل کېږي او زموږ د وطن مهم صادراتي قلم تشکيلوي په دې وختو کې د دغه نفيس صنعت انکشاف ته خاصه توجه سوې ده چې دادی د کندهار د وړيو اوبدلو په فابريکه کې د غاليو اوبدلو د ګڼې دوه ويشت دستګاوې په کار لوېدلې دی.

# د تورې بلبلې آواز

ما ستا څخه هيڅ نه غوښتل؛ ما تا ته خپل نوم هم ونه وايه چې ته رخصتېدلې نو زه په خوله ولاړ وم؛ زه د هغه ځای پر غاړه يوازې وم چې هلته د ونو سيورې مثلث شکل مونږ لپاره و، او ښځو خپل داو بو ډک منګي کوروته وړل؛ هغوی ما ته راتلو او سوی وې ويل:

«زموږ سره راځه داده غرمه سوه».

خو زه له تنبلۍ څخه په خپل پرېشانه تخيلاتو کې ډوبه سوې ولاړه وم.

ته چې راغلې ستا د قدمونو آواز ما وانه ورېد؛ تا ما ته په خورا غم آلودو سترګو کاته؛ تاچې له ما سره وړو، ورو خبرې کولې او په ستړي آواز دې وويل:

«آه زه يو تږی پردېس يم».

زه له خپل ورځنی خوبه هو لکی راوېښه سوم او له خپل منګي څخه مې ستا په غبرګه کې اوبه در توی کړې؛ د ونو پاڼې زموږ پر سر رېږېدلې.

د يوې غېږ مرنۍ تاريکۍ څخه د تورې بلبلې آواز راخوت او د سړک له پېچومو څخه د بابلا د ګلو وږمه پورته کېدله...

زه له شرمه په خوله ولاړه وم، چې تا زما د نامه پوښتنه را څخه وکړه واقعې ما ستا د پاره څه کړي دي چې تا زه ياده کړم.

خودا ياد چې ما ستا د تندې ورکولو د پاره تا ته اوبه در کولې زما د زړه سره به تل وی او په ډېر خوند به ئې ساتی.

سهار شو، ناوخته دی چنچڼو بيا خپلې سندرې نوې کړې د «نيم» د ونو پاڼې په سر رپېږي او زه ناسته تراوسه لا په هغه فکر کې يم.

«ټاګور»



د ۱۳۴۷ لمریز کال د زمري میاشت

# د بې علمۍ سره
## مجادله

بې علمي په اجتماع کې یو داسې لوی آفت دی چې په ټولنه کې لوی بدبختۍ او کړاوونه زېږوي.

که د نړۍ د مترقي هېوادو وننني انکشافاتو ته ځیر شو او هغه پرمختګونه چې د لرغوني تاریخ په ادوارو کې د دوی په برخه سوي دي هغه ټوله د تعلیم او علم د تعمیم ستره نتیجه ده چې بشري تمدن ئې په وجود راوړی دی او د علمي تحقیقاتو له مخې نن ورځ بشر ته د علم په رڼا کې دا قدرت میسر شو چې په ماوراي فضا کې هم خپلو معلوماتو ته وسعت ورکړي او د علمي تحقیقاتو له لارې هغه رازونه کشف او څرګند کړي کوم چې د کائناتو په لویه ساحه کې تراوسه پوري مرموز پاته دي څو د تکامل و نهايي مرحلې ته ځان ورسوي او له هغه څخه مطلوبه نتیجه په لاس راولي.

نن هغه وخت تېر سوی دی چې یو فرد دې بې له علمه څخه دې ژوند و کړای سي، د عصر او زماني مقتضیات دا ایجابوي چې د ټولني هر فرد باید ځان ته یوه علمي او مسلکي پېښه غوره کې، فردي او اجتماعي وجایب ښه ترا ادا کاندي او نېکمرغه ټولنه هغه ده چې غړي ئې په عالي سویه یوه وړاري څو د خپلې پوهې په اندازه د بشري ټولني د بهبود لپاره د نېو اجتماعي خدمت مصدر وګرزي څو که یوازې د اجتماعي ترقي تشه آرزو ورسره وي او د اجتماعي خدمتو و سرته رسولو په لاره ځان د علم او کمال په وسله نه سامبا له وي او د خپل شخصیت و تکامل ته توجه ونلري نو هغه مشکلات چې د بې علمۍ او ناپوهي په سبب دوی ورسره لاس او ګرېوان دي له منځه ئې ایسته نه کړي واضح خبره ده چې هم به خپله او هم بې منسوبه ټولنه به په ډول ډول آفتونو اخته وي.

نو باید وویل شي چې د دې دردونو د تسکین او بېرته کولو یوازني عامل پوهنه او علم دی چې لازم دی هره وروسته پاته ټولنه د علم او پوهې له لاري ځانونه د تمدن و کاروان ته ورسوي.

زموږ په ګران هېواد کې چې د تعلیم زده کړه په وړیا توګه ده او متبوعه حکومت د پوهني د زده کړي په ملحوظ هر ډول ممکنه وسایل برابر کړي دي او د افغان ولس هر فرد کولای شي چې د تعلیم د زده کړي په حصه کې بشپړه برخه واخلي، نو موږ باید دا ضرورت حس کړو چې د بې علمۍ د مصیبت د زیان د رفع کولو په غرض خپل کوښښ ته دوام ورکړو څو د تعلیم د تعمیم په وسیله چې زموږ لوی اکثریت اوس هم د تعلیم د زده کړي څخه محروم پاته دي د دغو کوښښو په برکت سره تعلیم یافته او دا نقیصه په چټکي سره رفع سي.



لیکونکی: م. [عطائی]

# پرشعر یو تحلیلی نظر

## د شعر دریم اصل

د شعر په باره کی چی موږ د انګلیسی معروف لیکوال جان ملتن دوه اصله مو تشریح او تفسیر کړل او

دا نتیجه مو په لاس ځینی راوړه چی ښه شعر هغه دی چی ساده ګی او بسیط والی ولری او د نفسانی لذاتو

پیرو وی، پدې روانه مقاله کی د نوموړی لیکوال دریم اصل څیړو چی د شعر لپاره آتش مزاجی د یو خاص اصل په حیث ټاکی.

په قدیمو ادبیاتو کی حماسه تر هر څه ډیره پاملل سوې ده اود پاملنی یو علت ئې هم داؤ چی حماسی

اشعار د آتش مزاجی په وجه دښو ډیرو وختو لپاره ژوندی پاته سویدی او نن له قدیمی نړۍ څخه موږ ته په

ادبی میراث کی هغه اشعار ژوندی پاته دی چی آتش مزاجی لری.

ډیره قدیمه حماسه د یونانی شاعر [هومیر] په «ایلیاډ» او «اوډیسه» کی

ده او څرنګه چی پدغو آثارو کی آتش مزاجی پرته ده نو نن چی تقریباً دری زره کلن تاریخ لری بیا هم هېر نه دی. دغه رنګه د

غزنوی دورې په ادبی جنبش کی دفردوسی «شهنامه» یو اثر دی چی د شعر په لحاظ ئې آتش مزاجی مالګه ده، همدارنګه د

پښتو ادب معروفه ویاړنه (حماسه) چی امیر کروړ جهان پهلوان ویلی ده: آتش مزاجی دا امتیاز ورکړیدی چی د پښتو ادب د فتح جوغه په سر کی ووهی.

په قدیمو حماسی اشعارو کی آتش مزاجی سته خو څرنګه چی په هغو کی نفسانی حدود د علیت تر قانون لاندی مغشوش او ورک

دی، نو زموږ د نننی جدلی قانون په اسلوب باید «ګونګ» هنر ورته ووایو خو په نسبی ډول ئې هغو اشعارو ته موثر ویلو چی له دغه دریم اصل څخه برخه لری یا لږ برخه لری.

د یورپ په اجتماعی تاریخ کی هغه مهال چی په منځنیو پیړیو کی پر ټولو اجتماعی او هنری موسساتو د کلیسا سلطه خپره شوه، نو شعر له دغو درو سرو

اصلونو څخه خلاص سو یعنی ساده ګی او بسیط والی ئې په مرموزیت الیش سو، د نفسی لذت څخه بېګانه اود عینی جهان حدود ئې ګرد ده په لغته ووهل او ددې څخه علاوه هغه آتش مزاجی چی نشاط زېروی بېخی پکښی نیستی سوه نوداؤ چی د هغه دورې اشعار که په یورپ کی وه پاکه په بل ځای کی نن هغه نه یواځی د بشری ذهن د رکود څرګندی نښانی بلل کیږی بلکی د بد شعر مثالونه هم ځینی جوړ پیدای شی.

په اتلسمه او نونسمه پېړی کی چی د سیاسی شرایطو بدلون اروپائی ولسونه د ملیت پرستی (نشنلزم) پر محور په څرخ کښېستل نو ددغی دورې شعر د آتش مزاجی آسمان ته وخوت څو څرنګه چی د عینی او ذهنی جریاناتو حدد ئې د نوی علمی اسلوب په چوکاټ کی نه تحلیلوی نو پدغو اشعارو کی نفسانی لذت ورو، ورو ورکېدی او ددې په اړخ کی ئې ساده ګی او بسیط والی د

نور د بشتی په دریم مخ کی

«۳»

د محمد اسماعیل [زاهل] ژباړه

# کندهار

## د تاریخ په مختلفو دورو کې

نو ئې د کندهار پاچا شاه حسین هوتکي ته استازي راواستاوه او له ده څخه ئې غوښتنه وکړه چې د نادرشاه د حکومت حجه پر ځان قبوله او د سلام او احترام د پاره ئې اصفهان ته راشي. مګر شاه حسین د نادرشاه دا غوښتنه په کلکه رده کړه.

نادرشاه وروسته د دې جواب تر اخیستلو پدې وپوهېده چې د کندهار ښتنا نه په خپله خوښه دده باداری او حجې ته غاړه نه ایږدي نو ئې د دوی د مغلوبولو او له پښواچولو د پاره په لازمو اکمالاتو او لاروچارو لاس پورې کړ، نو هغه وو چې په ۱۷۴۷م کال کې د یولک‌کسیز لښکر سره د کندهار د حملې او نیولو په نیت د سیستان له لارې څخه مخ پر کندهار حرکت راوکړ. شاه حسین چې د نادرشاه پدې عزم خبر شو ژر تر ژره ئې په دفاعي چارو پیل او پوره ترتیبات ئې و نیول.

نادرشاه په ۱۱۴۹ ه کال د شوال د میاشتې په ۳ نېټه د سیستان له لارې څخه و «لخک او دلارام» ته راغی، او د شوال په ۱۸ و ګرشک ته راورسېده. د ګرشک د کلا ساتونکو ښه مدافعه وکړه، مګر نادرشاه کلا محاصره کړه او یوه خونړۍ جګړه وشوه په پای کې نادرشاه د کلا بر جونه سوري او ساتونکي ئې تار په تار او کلا ئې و نیول.

نادرشاه د شوال په ۲۱ وروسته تر ۳ ورځو سختو او خونړیو جګړو چې د شاه حسین د شل زرو نفرو ملي مجاهدینو سره ئې د هلمند د رود پر غاړه وکړه وې کولای شول چې د هلمند له سیند څخه را پورې وزي. شاه حسین چې د نادرشاه لښکر خپل د لښکر پنځه چنده او ډېر غښتلی ولیده عزم ئې وکړ چې بېر ته کندهار ته راوګرځي او د کلا په ټینګولو پیل وکړ.

نادرشاه وروسته د هلمند تر تېرېدلو د «شاه اغا» وسیمې ته چې د کندهار د شمال غربي په ۵۰ کېلومترۍ کې پرته ده ولاړ او هلته ئې ۱۴ ورځې تیرې کړې، وروسته ئې د ارغنداب د رود غاړه را واخیستله او د باباولي صاحب پر برابر ئې وغوښتل له سیند څخه

پورې وزي، خو وې نه کړلای شول. شاه حسین چې خبر سو نادرشاه د ارغنداو د سیند غاړې ته رارسېدلی دی

نو ئې په شپه کې خپل د ښتني لښکر سره یرغل پر وکړ نږدې وو چې د نادرشاه په لښکر ماتې ګډه کړي خو پر سهار سو، او شاه حسین غیر له دې چې په خپله هیله کامیاب شي بیر ته ښار ته راوګرځېده.

سبا شپه نادرشاه د کوهګران پر حد ګودر پیدا او د ارغنداو له سیند څخه پورې وتی او د «لکی غره» له بغله سره ئې پداسې حال کې چې د کندهار کلا د

ساتونکو له خوا سختې ډزې او مقابله ورسره کېدله ځان ئې د کلای ختیځ خوا ته ورساوه (د کندهار د ښار کلا په هغه

وخت کې د قیتول د غره پر لوړه څوکه جوړه سوې وه او د قیتول د غره ویوې کوښې

ته اوس چهل زینه وایي) لومړی نادرشاه داسې فکر کاوه څرنګه چې له ګرشک

څخه بیا ترکندهار پورې د پښتنو له سختې مقابلې او دفاع سره نه دی مخامخ سوی نو د کلا نیول او په لاس راوړل هم کومه سختی او مشکلات نلری ، مګر هغه وخت چې و کلا ته رانژدې او د پښتنو له استحکاماتو ، جوش او خروش او جنګی احساساتو څخه خبر شو نو

وپوهېدی چې د کلا نیول څنګه چې ده خیال کاوه ډېر آسان کار ندی نو لدې سببه ئې عزم وکړ چې نوموړې کلا محاصره او دغذائی موادو د رارسېدلو ټولې لارې پر بندې کړی څو د کلا د ننه خلګ د لوږې او کاختې په زور ځانته تسلیم کی ، مګر بالمقابل شاه حسین دومرې خوراکی مواد او جنګی لوازم ذخیره او ساتلی وه چې بر سېره د ښار پر اوسېدونکو د شلو زرو عسکرو د پاره ئې هم د ډېرې اوږدې مدې د پاره کفایت کاوه .

نادرشاه ښار کلا بند کړ ، څرنګه چې وپوهېدی د کلا نیول داسې ژر امکان نلری نو د شهر سرخ په سیمه کی یو لوی او پراخ ښار جوړ کړ چې ښه بازارونه ، حمامونه ، مسجدونه (جماعتونه) ، رباطونه قهوه خانی او هر څه ئې درلودل . او د ترنک له سیند څخه ئې او به ور ته راوستلې او دا ښار ئې په «نادر آباد» موسوم کړ .

د قاضی عطاء الله خان د نظر یې په اساس د نوموړی ښار په جوړدلو کی د نادرشاه دوه مطلبه پراته وه : یو دا چې خپل د لښکر د استوګنې د پاره ئې ښار جوړ ولو ته اړه درلوده . بل دا چې نادرشاه غوښتل ددې ښار په جوړولو د کندهار خلګو ته دا ښکاره او ثابته کی چې دی د کندهار تر نیولو نه تېرېږی او په هر قیمت چې وی بایدوې نیسی .

که څه هم د نادرشاه د انوی او لوی ښار د «نادر آباد» بنامه جوړ او پای ته ورسېدی ، مګر د کندهار د ښار محاصره لا دوام درلود نادرشاه د زاړه او کلابند سوی ښار پر شاوخوا د رباط په څلورمه فاصله جنګی کوچنی کلاوی او ډېر برجونه جوړ کړل چې په هغو کی د نادرشاه پیش قراولان د خپلو توپوسره په څار بوخت وه څو له یوې خوا کلابند خلګ د ښار د باندې و نه وتلای شی او له بلې خوا خوراکی مواد ښار ته راو نه رسیږی .

د قاضی عطاء الله خان او محمد مهدی په روایت : د کندهار د ښار کلابندی یو نیم کال اوږده سوه او پدې وخت کی د نادرشاه یو شمېر عسکر چې په نورو کارو بوخت وه خلاص او فالتو شول او نادرشاه دغه فالتو پلټن د ښار په نیولو مؤظفه کړه ، که څه هم د حملې کوونکو شمېر زیات شو مګر سره د هغه هم زړورو مدافعینو په کلکه

دفاع کوله ، ترڅو چې نادرشاه ته نور هو سا عسکر رارسېدل او نادرشاه د نورو او زړورو عسکرو په اتفاق په یوې لویې او ډېرې سختې حملې لاس پورې کړ .

د میرزا محمد مهدی په قول : سره ددې چې د نادرشاه د لښکر هوسا او تازه دمه عسکر ګړی په ګړی د تېری -

کوونکو ومرستې ته ورسېدل او پښتنو مجاهدینو له هیڅ خوا څخه د مرستې امید نه درلود ، خو بیا هم تېری

کوونکو څو پلا له سختې ماتې او ګډوډې سره مخامخ سول .

په پای کی شاه حسین خپل له کورنۍ کهول سره و قیتول ته ولاړ . څرنګ چې له یوې خوا د پښتنو ټول دفاعی قدرت پای ته ورسېدی او له بلې خوا د کندهار

اکثره سیمې د نادرشاه په لاس ورغلې وې او شاه حسین ته له هیڅ خوا څخه د هیڅ شی او مرستې امید نه وپاته نو

غیر له متارکې بله لاره نه وه هغه و چې سبا ئې د متارکې غوښتنې لیک و نادرشاه ته ور

ولېږی او پدې ډول نادرشاه پر ټول کندهار تسلط پیدا کړ

نادرشاه وروسته تر متارکې شاه حسین سره د ده ټول کهول او خپلوان حتی د اکا تر زامنو پورې «مازندران ته تبعید» او امر ئې وکړ چې د کندهار د زاړه ښار ټول دېوالونه او برجونه چې د غره پرلوړو برخو جوړ سوی وه ونړوی او له خاورو سره ئې برابر کړی. او پښتانه ئې مجبور کړل چې په نوی ښار یعنې نادر آباد کې استوګنه وکړی.

نادرشاه چې له اوله څخه لا د پښتنو زړه ورتیا او غښتلوالی دده زړه وړی ؤ د هندوستان د پراخې او ارتې سیمې د حملې د پاره ئې د پښتنو ځلمیانو یو لوی لښکر جوړ او د کابل له لورې ئې پر هندوستان یرغل وکړه.

هغه وخت چې نادرشاه خپل د محافظینو (ساتونکو) د کپتان «سالار بیګ» له خوا ووژل سو نو «احمدشاه بابا» چې د نادرشاه له سردارانو او امیرانو څخه ؤ په ۲۴ کلنی کې د کندهار د حکومت واګې په لاس کې ونیولې، هغه عسکری او اقتصادی قوت چې احمدشاه بابا په دغه وخت کې په لاس کې درلود عبارت له لس زرو سورلیو د نادرشاه خزانه او د کوه نور د الماس څخه ؤ.

نو موړی په دغه قدرت او خپل شخصی لیاقت او استعداد د پښتنی قام ملګرتیا او مرسته په لاس راوړل. ده په ۱۱۷۴ هـ کال کې د کندهار داوسنی ښار کار پای ته ورساوه او ددې د پاره چې د ښار مدافعوی قدرت ښه تر ازیاتسی د ښار پرشاوخوا ئې یو پرلوی او پراخه دېوال راوګرزاوه.

احمدشاه بابا وروسته تر هغه چې په کندهار کې سلطنت جوړ کړ، ۲٦ کاله ئې پاچاهی وکړه او پدې موده کې ئې څو واره هندوستان ته سفر کړیدی، ځرنګه چې احمدشاه بابا خپل د ټولو فتوحاتو قدرت او کمالات د کندهار له ولایت څخه کول نو لدې کبله د کندهار نظامی او عسکری موقعیت ډهېر پډو وړ نه دی.

د احمدشاه بابا تر مرګ وروسته هم کندهار خپل پخوانی خصوصیات وساتل، یوازی او یوازی «تیمورشاه» دومری وکړه چې خپل پایتخت ئې له کندهار څخه وکابل ته یووړ، او اغلب ګمان داسی کیږی چې دغه د پایتخت انتقال هم کومه عسکری جنبه ندرلوده.

وروسته تر تیمورشاه او دده د اولادې په وخت کې چې پښتنی امپراطوری له داخلی او خارجی ښورښونو او هرج ؤ مرج څخه ړ که

او ګټې وړه وه ، د کندهار ولایت خپل عسکری امتیاز ساتلی او په هر وخت کې کوښښ کېدی چې د کندهار

حساسه سیمه یوه لایق او باکفایته امیر ته وسپارله شی څو ددې ولایت له خوا څخه پښتنی امپراطوری په مشکلاتو اخته نشی.

هو! د بارکزیانو په وخت کې چې افغانستان د انګریزانو سره لاس او ګریوان او په مجادله بوخت ؤ

انګریزانو خپل د حرکت او تعرض د پاره د کندهار لار وټاکله ، سره ددې چې د کندهار لار نسبت د خیبر ولاری ته ډېره اوږده هم وه.

هغه وخت چې وزیر محمد اکبرخان د انګریزانو سره په کابل کې په جګړو او شخړو بوخت ؤ کندهار د

انګریزانو د یوه مقتدر صاحب منصب « جنرال ستوت نات » له خوا اداره کېدی . هغه جنرال خپل

موقف تر ډېره وخته پورې په کندهار کې وساتی، او حتی تر هغه وخت پورې چې کابل، جلال آباد، غزنی او زابل هم د انګریزانو له لاس څخه ووتل .

جنرال نات په کندهار کې پرخپل حال پاتې او پدې سیمه کې ئې د خپلو عسکرو په واسطه ځان ټینګ کړی و ترڅو چې د انګریزانو په مقابل کې پښتنې قیام پوخ او خپل کمال ته ورسېدی. انګریزانو خپل د لښکر د وتلو امر صادر او هغه جنرال هم له کندهار څخه ووتی.

په ۱۸۶۷م کال کې چې د امیر شیرعلیخان او د امیر عبدالرحمن خان په مینځ کې اختلاف او شخړه شروع سوه، کندهار یو وار بیا د عسکري جګړو او شخړو ډګر وګرځېدی. څو په پای کې د ۱۸۶۸م کال د جون په میاشت کې امیر شیرعلیخان کندهار ته راغی.

د پښتنو او انګریزانو (افغان و انګلیس) د دوهمې جګړې په وخت کې جنرال «ستیوارت او بودولف» په جنوبي جبهه کې د مسافې د لرې والي او مځکنی مشکلاتو په سبب ډېر ربړونه او خواري ولیدلې او د دوی پرمختګ خوراک پر وخت ونیاوه، په پای کې ئې په ډېره سختۍ کندهار ونیاوه او د کندهار والي خپل د سپرو لښکر سره د هرات خواته پرشا ولاړی، چې د کندهار په نیولو او ځینو نورو بریالیتوبو ګویا د پښتنو او انګریزانو د دوهمې جګړې لومړی مرحله د انګریزانو په ګټه پای ته ورسېدله.

بله پلا بیا په ۱۸۸۰م کال کې یعنې د میوند په جګړه کې د کندهار سیمه د جګړې او شخړې ډګر وګرځېدی او د پښتنې خاورې د زامنو د پاره ئې زړه ورتیا، سربازي او مېړانه د تاریخ په پاڼو کې په مشقي قلم ولیکل. ددې تاریخي افتخار عظمت او ارزښت د یوه انګلیسي تاریخ لیکونکي جنرال پدې لاندې جمله کې لیدلای سو.

دی وایي: «په ټولو جنګو او شخړو کې چې د انګریزانو او پښتنو په منځ کې پېښې سوېدي د میوند جګړه لویه او د انګریزانو د پاره یوه ښکاره ماتې شمېرل کېږي او پدې جګړه کې د یوې سختې او رښتنې ماتې لکه د انګریزانو د نظامي شهرت پر لمن ولوېدله».

هو! دا چې ددې افتخاره ډکې جګړې تاریخي پهلوان او قهرمان څوک دی؟ ټولو محترمو لوستونکو ته ښکاره او تر لمر سپینه ده چې د امیر شیرعلیخان دوهم زوی سردار محمد ایوب خان و چې په هرات کې د یوه رښتني مشر او قائد په حیث د انګلیسي قواؤ په مقابل کې ودرېدی، د انګریزانو د مقابلې او جګړې د پاره ئې د همت او مېړانې ملا ټینګه وتړله او مخ پر کندهار رارهي سو او دا ابدي ویاړ ئې د پښتنو زامنو په نصیب کړ.

داوه د کندهار د ولایت عسکري ښه او سوق الجیشي ارزښت د پخوا زمانې څخه بیا د امیر عبدالرحمن خان تر وخته پورې چې دلته په لنډ ډول وړاندې سوه

څرنګه چې د امیر عبدالرحمن خان تر دورې را وروسته بیا

تر ننني دورې پورې د کندهار د سیمې پېښې و

هرچا ته ښه ښکاره او معلومېدی نو د هغو ولیکلو

او روښانه کولو ته چندان ضرورت نه لیدل کېږي.

داچې د دغه ولایت په اوسنۍ پېړۍ او راتللونکي وخت کې د عسکري نقطهٔ نظره او سوق الجیشي ارزښت له

کبله څه اهمیت لري، د هغه تخمین او اټکل کوم سخت او مشکل کار نه دی.

«پای»

## دوست او دښمن

وخت او زمان که په کار، کوښښ او مشغولتیا سره تېر سي د انسان وفاداره دوست دی او که برعکس په بېکاري او هوسانۍ کې تېر سي د ژوند لوی غلیم دی.

د «ف، کاسب» لیکنه او تتبع

# ډراماټیک ادبیات
# او
# په اروپا کې د هغه سیر

ډراماټیک ادبیات هغه تالیفات او آثار په ځان کښې راغونډوي چې د مکالمې او تأثر په ژبه لیکل سوي وي چې د خپلو مشخصاتو له مخې پر دوو دورو وېشل کېږي.

۱. لرغوني ډراماټیک ادبیات.
۲. معاصر ډراماټیک ادبیات.

د لرغوني یونان متفکرينو په خپلو کلاسیکو آثارو کې لاندني درې موضوع - ګاني دیوه ډراماټیک اثر لازمي او لومړني شرطونه بلل.

۱. د زمان یووالي (وحدت).
۲. د مکان (ځای) یووالي.
۳. د آکسیون یووالي.

په پخواني روم کې چې تأثر ئې د یونان له تأثر څخه اقتباس کړی ؤ او زیاته مده ئې ډېر اهمیت درلود د منځنیو پېړیو په لومړیو وختو کې د کلیسا له خوا څخه چورسو او کلیسا خپل مذهبي تاترونه منځ ته راوړل چې په هغه کې د یونان د اساطیرو ځای د مسیح او حواریونو ډراموونیوی. او په هغه کې لوېودرووحدتونو اساسي رول نه درلود.

د رنسانس په دوره کې ډرام لیکنه په انګلستان او اسپانیا کې دخپلې ترقي او تکامل و لوړې درجې ته ورسېدل او د نوی کلاسیسیم سبك منځ ته راغلی چې شکسپیر ئې لوی پیرو دی پدې باره کې زیات بحثونه سویدی.

تر رنسانس وروسته د کلاسیسیم دوره په فرانسه کې په بل شکل منځ ته راغله پدې وخت کې بیرته لوېودروګونو وحدتونوی ځان سره ونیوی او د ډرام لیکنې اصلي جز وشمېرل سو.

د فرانسې د ډرام لیکونکو لکه «کورنی، راسین، مولیر» ټول آثار د درو ګونو وحدتونو پر اساس لیکل سوي وه د کلاسیسیم دوره په فرانسه او لوېدیځه اروپا کې تر یوې پېړۍ زیات دوام وکړ تر څو چې په جرمني کې لاکو ته او شیللر د هغې بشپړې ازادۍ تر تاثیر لاندې سول کوم چې په انګلستان کې شکسپیر منځ ته راوړې وه

او ځینې هغه غنیمت آثار لکه «ګیوم تل»، «ون کارلو» لی داورلئان پېغله» او داسې نور پدغه دوره کې منځ ته راغلي دي. دغه دوره نو د روما- نتسیسم په نامه یادېږي چې لومړی په المان او وروسته ئې په فرانسه کې د زیاتو مخالفتونو سره سره نفوذ وموند او تکامل ئې وکړ. د دې سبك مهم نمایندګان ویکتور هوګو، شاتوبریان او مادام دواستان دي.

د ډراماټیک ادبیاتو ډولونه

په عمومي ډول ډرا- ماټیك ادبیات پر درو برخو باندې وېشل کېږي:

۱. تراژیدي.
۲. کمیډي.
۳. ملوډرام.

۱. تراژیدي:-
تراژیدي أصلا یوه یونانی کلمه ده او د دوو کلمو څخه تشکیل سوې ده چې لغوي معنا ئې د «بزې آواز» دی او دا ئې دا نوم دی هم پدې سبب انتخاب سوی وی چې ګرغونو یونانیا نو د مذهبي تشریفاتو او نمایشو د اجرا په وخت کې د وزې کالی اغوستل او لکه فرانسوی ستر لیکوال «بوالو» چې وایي: هغه جایزه چې د تراژیدي ویونکي پر هنرمند بازکرته به ور کول کېدل وزه وه.

ارسطو تراژیدي داسې تعریفوي: «هغه نمایش چې د خلګو د رحمنا کو احساساتو تحریك او د وحشت ایجاد ئې نفس ترمیم او جوړوي».

تراژیدي د ژوند مشکلاتو او ناوړتیاوو په مقابل کې د انسان تلاښ او کشمکش دی.

د تراژیدي قهرمان دیوه عالي مقصد د پاره لاس راوړلو د پاره په یوه اقداماتو لاس پوري کوي او په ضمن کې ئې د داسې مشکلاتو سره مخامخ کیږي چې د هغه حل ئې په وس نه وي او په پای کې ماته خوري، نو ځکه د تراژیدي اصلي جوهر «مبارزه او جګړه ده».

تراژیدي چې به په لومړي سر کې لیکلې او یا به لوبول کېدل د سترو قهرمانو او شهزادګانو قصه به وه.

ارسطو وایي: د تراژیدي قهرمان باید زیات شهرت او بشپړه نېکبختي ولري.

چاسر انګلیسي ئې په تعریف کې وایي: « تراژیدي د قهرمانو او لویانو نکل دی چې په عین آرامي او هوساینې کې په بدبختي باندې لګیا او ژوند ئې د سختیو سره مخامخ کیږي».

تراژیدي په انګلستان کې د الیزابت په وختو کې د شکسپیر په آثارو سره نوې شکل ومو ند یعنې د یونان تراژیدي به د افکارو او احساساتو او یا به ګاهې د بشر د سرنوشت او اتفاق (تصادف) تر منځ شخړې وې.

۲. کمیډي:-
کمیډي په اصل کې یونانی کلمه او معنا ئې «کلی او ز ه آواز وایم دی» ده.

د دغه ډول نمایشونو درواج په سر کې به شاعران له دې کلي څخه و هغه کلي ته تلل، پر کڅوړو باندې به در ېدل او خپلې نمایشنامې به ئې لوستلې.

یونانیانو لومړی سر په کمیډي کې عالي هدف درلودی او مقصد ئې یوازې تفریح او خندا نه وه بلکې د ډرام لیکونکي مقصد به په ټولنه کې د کمیډي او انتقادی حملو کولو.

په کمیډي کې خندا یوه داسې حربه ده چې د هغه په وسیله د انتقاد عمل سرته رسېږي.

د کمیډي ارزش هم د هغه پر د مخنیو محتویاتو باندې بنا دی چې هغه «داخلي جګړه او کشمکش دی».

نو ځکه کمیډي د خپل اصلي جوهر له مخې لکه تراژیدي پر مبارزه او کشمکش باندې ولاړه ده خو اصلا" په وسیله او هدف کې کلې تو پیر لري.

په کمیډي آثارو کې جګړه او کشمکش په بېلو بېلو طریقو سره څرګندیږي

الف. د فرد او ټولنې د قوانینو تر منځ شخړه چې که فرد د ټولنې د کلي او عمومي قوانینو پر ضد عمل کوي، د کمیډي [په ۱۲ مخ کې]

د رشید [آرین] ژباړه

# ملت

ممکنه ده داسې افراد وښودل شي چې مشترکه ځمکه او مشترک اقتصادي ژوند لري خو سره ددې ژبې او ملي اخلاقو په لحاظ اشتراکه یو ملت نه تشکیلوي، لکه المانیان اود بالتیک د غاړې لاتویان. بالاخره ناروېان

او ډنمارکیان په یوه ژبه خبرې کوي خو د نورو نښو د نه لرلو له کبله دوی یو ملت نه دی یوازې ددې ټولو نښو

یوځای وجود ملت تشکیلوي کېدای شي داسې تصور وشي چې «ملي اخلاق» یوازې یوه نښه نده بلکې د ملت

یوازنۍ اصلي علامه ده او نورې نښې په حقیقت کې د

ملت د تکامل شرایط دي نه مشخصه علامې، مثلاً سپرینګر

او مخصوصاً بوئر چه په ملي مسئله کې د اتریش د سو-

سیال دیموکراتانو مشهور تیوریستان دي دغه راز فکر لري.

اوس به د ملت په باره کې ددوی تیوری وڅېړو:

د اسپرینګر د نظریې له مخې ملت د همکارو او مشترکې ژبې خلکو له اتحاد څخه عبارت دی، ملت د یوې ډلې هم عصرو وګړو فرهنګي

او مدني اشتراک دی چې په مځکه پورې اړه نلري (پر کلماتو مو تکیه کړېده) نو ملت د هم فکرو او مشترکې ژبو

وګړو (اتحاد) دی چې که څه هم په هر ډول یو له بل څخه بېل او هرځای چې سکونت ولري بوئر تردې هم ورتېرېږي.

دی پوښتنه کوي: چې ملت څه شي دی؟ آیا د ژبې اشتراک خلک د یوه ملت په شکل سره پیوندوي؟ خو

انګرېزیان او ایرلینډیان چې په یوه ژبه خبرې کوي یو ملت نه دی، یهودیان ګر سره مشترکه ژبه نلري خو بیا هم یو ملت دی.

نو ملت څه شي دی: «ملت د اخلاقو نسبي اشتراک دی» اوس به نو وګورو چې اخلاق او پدې مورد کې ملي اخلاق څه شي دي؟

ملي اخلاق «د هغو نښو مجموعه ده چې د یو ملت خلک له بل ملت څخه بېلوي، د روحي او جسمي صفاتو مجموعه ده چې یو ملت له بل ملت څخه متمایز کوي.

البته «بوئر» پوهېږي چې طبیعي اخلاق له آسمان څخه نه دي نازل سوي، نو ځکه اضافه کوي: بېله د اشخاصو له سرنوشته

بل شی د هغو اخلاق نه مشخصوي چې نو.. ملت د سرنوشت بېله اشتراک څخه بل شی ندی چې په خپل روڼ تر هغو شرایطو لاندې

تعینېږي چې اشخاص په هغو شرایطو کې د خپل ژوند وسایل تولیدوي او د خپل کار محصو-لات سره ویشي.

پدې ډول موږ د «بوئر» په قول د ملت وبیخي بشپړ تعریف ته ورسېدلو.

ملت له هغو ټولو افرادو څخه عبارت دی چې د سرنوشت د اشتراک پر زمینه باندې د اخلاقو اشتراک یو د بل سره تړلي دي.

په بله ژبه سره ملت د سرنوشت د اشتراک په زمینه باندې د ملي

اخلاق له اشتراك څخه عبارت دی بېله دې چې دمځکی ژبی او داقتصادی ژوند د اشتراك سره دی حتمی ارتباط ولری.

نو پدې صورت کی له ملت څخه څه پاتېږی؟ دهغو افرادو په باره کی چې د اقتصادی نظره یو له بل څخه بېل وی په جلاجلا هیوادو کی ئې ژوند کړی او پښت پر پښت دی په مختلفو ژبو خبری کړی وی له کوم ملی اشتراك څخه خبری کولای سو؟

بو ئر د یهودیانو په باره کی د یوه ملت په عنوان پغیږی پداسی حال کی چې دوی ګر سره مشترکه ژبه نه لری، خو مثلا: دګرجستان داغستان، روسیې او امریکا د یهودیانو په منځ کی چې یو له بل څخه کاملا بېل دی په مختلفو ژبو خبری کوی او په بېلو، بېلو هیوادو کی ژوند کوی له کوم ملی ارتباط او د سرنوشت له اشتراك څخه پغېدلای سو؟

نو موږ ی یهودیان بېله ؛شکه دګرجستیانو، داغستانیانو، روسانو او امریکائیانو سره ګډ اقتصادی او سیاسی ژوند لری او په ګډ فرهنګی محیط کی سره اوسېږی پر ملی اخلاقو باندی ی اغیزې نسی پاتېدلای، که ددوی تر منځ یو مشترکه وجه هم پاته وی هغه به مذهب او نسب او ددوی د ملی اخلاقو ځینی نښی وی دا ټوله منځ ده خو ددې سره دا څرنګه جدی ویلای سو چې ددې یهودیانو په «سرنوشت» کی دی مذهبی جامد دودونه او پسیکولوژیك آثار چې د بربادېدو په حال کی دی تر ژوندی اجتماعی اقتصادی او فرهنګی محیط چې دوی احاطه کوی شدیده اغیزه ولری حال دا چې یوازی پداسی فرضیه سره په کلی ډول یهودیان واحد ملت بلل کېدلای سی.

پدې صورت کی او د روح-پرستانو (سپریچولستان) د صوفیانه او «قائم بالذات» (ملی روح) سره د بوئر د ملت فرق څه دی؟

بوئر د ملت د ممیزه نښی (ملی اخلاق) او د هغه د ژوندد شرایطو تر منځ غیر قابل عبور فاصل خط رسم کړی او هغه یو له بل څخه جلا کوی نو ملی اخلاق څه شی دی؟ آیا د ژوند د شرایطو انعکاس او د هغو تاثیراتو تراکم نه دی چې د احاطه کوونکی محیط څخه منځ ته راغلی دی؟ داڅرنګه ممکنه ده چې یوازی دی په ملی اخلاقو پوری محدود سو او له هغی زمینی څخه دی بېل او متمایز کړو چې دا مختصات ئې مولود دی.

بالاخره د ۱۸ پېړی په پای کی او د ۱۹ پېړی په سر کی کله چې شمالی امریکا لا نو انګلستان بلل کېدی د انګلستان د ملت او د شمالی امریکا د ملت تر منځ اصولا څه فرق موجود و؟ څرګنده ده چې دا فرق ملی اخلاق نه وه ځکه چې د شمالی امریکا وګړی له انګلستان څخه تللی وه او تر انګریزی ژبی علاوه ئې ملی انګلیسی اخلاق هم د ځان سره وړی وه او دا هم منلی ده چې داسی ژر ئې د لاسه نسوای ورکولای خو ویلای شو چې د نوو شرایطو تر اغیزې لاندی ددوی تر منځ مخصوص اخلاق منځ ته راتلل سره ددې د لږو ډېر مشترکو اخلاقو د وجود سره له هماغه وخت څخه دوی نست و انګلستان ته خاص ملت تشکیلاوه.

داڅرګنده ده چې پدې وخت کی د انګلستان سره د یو ملت په حیث د «نوی انګلستان» فرق د خاصو

ملي اخلاقو په لحاظ نه‌ؤ. یا چې ووایو فرق ئې د انګلستان سره تر ملي اخلاقو ډېر د مخصوص محیط اود ژوند د شرآیطو پـه لحاظ دی .

پدې ډول نو واضحه ده چې په حقیقت کې دملت دپاره یوازې یوه ، هیڅ مشخصه نښه نسته، یوازې د علامو یوه

مجموعه سته چې له هغو څخه د مقایسې په‌وخت کې کله یو (ملي اخلاق) ، کله بله (ژبه) او کله بیا دریمه

علامه ( مځکه ، اقتصادی- شرایط) تر ټولو برجسته‌ښکاره کیږی. ملت د ټولو نښو یو ځائی راغونډېدل دی.

د بوئر نظریه چې ملت اخلاق بولی ، ملت له مځکې څخه بېلوی او په یوه غیر مرئی او قائم بالذات شی

سره ئې تبدیلوی چې پـه نتیجه کې یو عرفانی غیر قابل درك او تر دنیا په هاخوا شی په لاس راځی

نه‌یوژوندی او عمل ته‌وارد ملت. ځکه بیا تکرار‌وو چې مثلا داځرنګه یهودی ملت دی چې دګرجستان، داغستان

روسیې ، امریکا او نـورو هغو یهودو څخه عبارت‌دی

چې‌غړی‌ئې یو دبل په خبره نه پوهېږی ( په بېلو، بېلو ژبـو ږغېږی)، دمځکې دکرې په مختلفو سیمو کې اوسیږی، هیڅ‌وخت به یو

اوبل نه سره‌ووینې او ګډ سره به نه‌د سولې په‌وخت کې نه دجنګ په‌وخت کې په ګډه په یوه کار لاس پورې کړی!

سوسیال دیموکراسی خپله ملي کړنلار داسې دکاغذه پرمخ «ملتو»دپاره نه‌تنظیموی اویوازې هغه ملتونه پـه حساب کې را-

وړلای سی چې واقعیت ولری، په عمل کې داخل وی، په‌حرکت کې وی او نوځکه نور مجبور کړی چې دوی په‌حساب کی راوړی.

داښکاره ده چې بوئر هات، چې یوه تاریخی کټګوری ده د عشیری سره ګډوی چې دطایفه- شناسی (انتوګرافیك) کټه‌ګوری ده.

په ضمن کې خپله بوئر هم د خپلې نظریې ضعف ظاهرآ احسا- سوی پداسې حال کې چې د خپل کتاب په سر کې په قطعی ډول

ښکاره‌کوی چې یهودیان واحد ملت دی. دکتاب په‌پای کې خپله

اشتباه‌سموی او ټینګار کوی‌چې په کلي ډول سرمایه‌داری جامعه

نه‌پرېږدی چې دوی«یهودیان»د یوه ملت په‌حیث پاته سی اودوی په نورو ملتو کې حلوی.

لکه‌څرنګه چې معلومه ده دلیل ئې هـم دادی چې «یهودیان دخپلې اوسېدنې اوآبادولو دپاره‌ټاکلې او محدوده منطقه نـه لری» پداسې حال کې چې دچکانو

دپاره‌یو داسې منطقه سته چې دبوئر د نظریې سره‌سم باید‌یوه ملت په‌حیث -ا تلی پاته سی ، لنډه داچې‌دلیل ئې‌د مځکې نشته‌والی دی.

بوئر پدې بحث کې دا ثابتول‌غوښتل چې یهودی کارګر ملي خودمختاری نسې غوښتلای، خوده پدې

ډول‌غیر قصدی خپله تئوری ماته کـړه چې د مځکې له اشتراك څخه ئې د ملت د علائمو دیوې :لامې په‌حیث انکار کاوه.

بوئر تردې هم پسې ور تېرېږی . دی د خپل کتاب په سر کې په قطعی ډول ښکاره‌کوی چې «یهودیان

ګـډ سره مشترکه ژبـه نه لـری خـو بیا هـم ملت تشکیلوی».

خو و ۱۳ مخ ته ‌ ‌ارسیدلی بیـا خپلې جبهې ته تغیر ورکوی‌او په همـاغه ټینګار سره وایی :

۱۲ مخ دی وکتل شی

## ډراماتیك ادبیات او ....

د ۸ مخ پاته

شاعر او مؤلف تر انتقاد لاندی نیول کیږی او یو په بل پسې ئې دمخه څخه پرده ایسته کوی لکه قارنوفیان او ولینیان دغه ډول افراد او په نتیجه کی دغه ډول کمیډی ته د «کاراکټر» کمیډی وایی چی جهانی جنبه لری او ددې

آثارو دبری دلیل دادی تر څوچی خرافات موجود وی «تارتوف» هم ایدل کیږی .

نجبا او اعیان زاده عناصر د ځینو خلکو په کار پوری خاندی او په همدې ترتیب... دټولنی دطبقو څخه یوه طبقه ځان ښه بولی او پر بله طبقه باندی انتقاد کوی «بورژوژانتی» او «فیګارو» له دغه ډوله څخه دی.

ملوډرام :-

په ۱۹ پېړۍ کی د شکسپیر منو کلاسیسیم په ملو ډرام باندی تبدیل شو .

ددې سبك د پیدایښت تاریخچه له هغه ځایه څخه ده چی د اجتماعی تحولاتو په اثر په تاترکی لومړنی او دوهمه ډله دانجباؤ جانشین سوله اود تآتر ژبه له شعر څخه په عادی نثر واوښتله ، کله چی د یوې تراژیدی

د ننني مبارزه په وحشت انګیزو آثارو سره ښکاره شی ملو ډرام بلل کیږی. [پای]

---

د ۱۱ مخ پاته برخه

بېله شکه څخه دهیڅ ملت وجود بېله مشترکی ژبی څخه امکان نه لری ( پر کلماتو ماتکیه کړی ده) .

بو نر دلته دا ثابتول غوښتل چی « ژبه دبشری معاشرت مهم ابزاردی» خوده په عین حال کی غیر قصدی هغه څه هم ثابت کړل چی د ثابتولو په فکر کی ئې نه ؤ

یعنی د ملت په باره کی ئې د خپلې شخصی تیوری چټې- والی ثابت کړ چی د ژبی له اهمیت څخه ئې انکار کاوه.

---

«له هری خوا څخه»

## تر ټولو لوړه بېړۍ

پدې وختو کی دالمان فدرالی حکومت یوه داسی برۍ بېړۍ په کار اچولی ده چی ۹۱۰۰۰ ټنه تجارتی مالونه وړلای شی.

نوموړی بېړۍ چی د «ایسو- دیو یچ لینډ» نوميږی څه مده دمخه دهامبورګ دښار په یوه ساحل کی په کار واچول سوه. دا بېړۍ ددغو ۱۴ بېړیو له جملې څخه ده چی په څو تېرو کلو کی د «ایسو» د کمپنی له خوا تر جوړېدلو لاندی وه ددغی بېړۍ دجوړولو کار د ۱۹۶۲ کال دفیروری په میاشت کی شروع اود روان کال دمی په میاشت کی پای ته ورسیده او په مخصوصو تشریفاتو دفډرالی المان جمهور رئیس دښځی «فراولو بکی» په واسطه پرانیستله سوه. دغه بېړۍ د کارابین او نورو بحیرو په اوبو کی تنګ اوراتګ کوی او تر اوسه پوری ئې د نړۍ د ډېرو بحری دمرکزونو سره ارتباط ټینګ کړیدی.

ایسو دیو یچ لینډ ۸۵۰ فټه اوږد- والی اود انجنونو قوه ئې ۲۸۰۰۰ هارس پاور ته رسېږی د تګ لوړه اندازه ئې ۱۷، اعشاریه ۵ ناتیکل میله ده .

---

نوهغه تیوری چی له ایډیا- لستی او مړو تارو څخه اودل سوی وی پخپله خپل ځان تکذیبوی .

د شاګلی [وېمی] ژباړه

# برنارډشاو

هغه ستر لیکوال او فیلسوف چې عقیده ئې درلودل: «څوك چې هیڅکله امیدوار نه وی هیڅکله مأیوسېږی هم نه.»



برنارډشاو په ۱۹۵٦ کال کی په دابلین کی و نړی ته راغلی دی.

شاو د مدرسې سره چندانی علاقه نه درلوده. د ښوونکی او درس څخه دلسرده سوی وو.

دی خوشاله ؤ چې یوازی ئې ۵۰ کاله درس ویلی دی.

کله چې څېنې وغوښتل سول چې ده د «سنت جون» د نمایشنامې یوه صحنه په درسی کتابو کی ځای کړی جداً ئې مخالفت وکړ او وې ویل:-

«یا زه هیڅکله و چا ته اجازه نه ورکوم ابدی لعنت دې وی پر هغه چا چه وغواړی زما آثار څه اوس او څه په آینده کی په درسی کتابو کی راوړی او ئکه شکسپیر منفور کړی، زما نمایشنامې ددې د پاره نه دی لیکل سوی چې د زجر او شکنجې وسیله دی سی... سره ددې چې په ښوونځی کی ئې حساب ضعیف ؤ خو پر ۱٦ کالو باندی دغلو په یوه مدرسه کی د تحویلدار په حیث مقرر سو. ده له دې مؤسسې څخه



۴۸ لیرې حق اخیستی او د کار د پرېښولو نیت ئې هم نه درلوده.

خو یوه ورځ یوه واقعه پېښه سوله چې د ژوند د تحول نقطه ئې شمېرل کیږی او هغه دا وه چې یوه ملګری ئې دغه لوی راز فاش کړ چې ټوله زامن غواړی یوه ورځ دی د ستر و خلګو په قطار کی راسی.

شاو تر هغې ورځې پورې هیڅ داسې فکر نه کاوه



خو نابېره ئې له کاره څخه استعفا وکړه له بستره ئې وتړل او د لندن وخوا ته رهی شو.

خو متأسفانه په لندن کی چې هر څه په کار پسې وګرځېدی پیدا ئې نه کړ خو په هغه ځای کی ده ده خبره څوك چې هیڅکله

امیدوار نه وی هیڅکله نا امیده کیږی هم نه، له دې بد چانسی څخه ئې په زړه کی هیڅ مایوسی پیدا نه شوه.

شاو ۹ کاله بېکاره ؤ او خپل وخت ئې د متفرقو کتابو په مطالعه او کله، کله په ناول لیکنه باندی تېراوه.

سره ددې چې پدې موده کی ئې پنځه ناوله لیکلی وه خو هیڅوك حاضر نشو چې دده کتابونه دی چاپ کړی. پدې

وخت کی دده ډرامه یوازی و پنځو لیرو ته رسېده چې هغه هم د خو انتقادی مقالو د لیکلو له درکه ؤ چې د برنارډشاو نوم لږ مشهور او د خلګو په خولو کی

نور په ۱۹ مخ کی




ښاغلی [الفت]

# د سولې نړۍ

هغه ورځ به ښتوره وي هر ګوره
چې د سپینو زړونه تور نه وي له توره
کرکه نه وي یو له بله محبت وي
وروروليِ سوله صفا وي او ښه نیت وي
هر ور خلک یو بل سره پخلا شي
نه چې غوښه او چاړه هغه او دا شي

بشري دوستي قائمه په جهان وي
خوښ په سوله هم کافر هم مسلمان وي
نژادي تو پیر هیڅ نه وي په دنیا کښې
نه په شرق او نه په غرب نه امریکا کښې
استقلال منلی حق د هر ملت دی
خو قایم په ملتو کښې اخوت دی

دا څو رنګه ساز آواز د هیوادونو
شي یو آرکستر ا د ولسونو
د ګډژوند اصل او اساس اصلي منظور وي
جهاني عدل او انصاف صحیح دستور وي

هر ملت په هر نظر ښکلی وی ښاغلی
که په هر رنګ او آئین ښکلی وی راغلی
سړیتوب دی محترم په هر لباس ښکلی
په زړو جامو ښکلی وی که په کرباس ښکلی
داسی وساتی هرڅوک خپل مسلکونه
چی ونه کړی یو له بل سره جنګونه

ټول جهان د دوستۍ کور وی سرتر سره
د جنګ وېره شی له زړونو نه بهره
زور تړلی وی د سولی په قانون
بهار شوی مستاوښان وی د جنون

تو یول د وینی شرم او پېغور وی
شرمنده، ذلیل، سرټیټی ظلم او زور وی
جنګ شی هر چیرته د سولی بیرغونه
شی په سمه لار روان سیا ستونه
د انسان زړګی له جنګ او جګړې تور شی
توره ماته شی او جوړ ورنه څه نور شی

خو له نه وی علامه د خجالت
په خدمت خولی کېدل وی شرافت
یو له بله محبت مهربانی وی
د «الفت» هیله او فکر جهانی وی
زه له تا ځنی جار بیم ته له ما نه
که جدا هم وی زما آئین له تا نه

---

# زما وجود

ما د ملاقات د ټاکلی ځای، د تلو دپاره ټوله لار یوازی ووهله ؛ خو دا څوک دی چی پدې توره تیاره کی زما سره په پټه خوله روان دی.

زه زیار باسم چی له ده څخه جلا شم مګر دی نه جلا کیږی .

له ډېره خیاله د ګوتو په سرو ځی خپل لوړ ږغ زما له هره لفظه سره یو ځای کوی .

ای باداره! پخپله زما کوچنوټی وجود دی، دی خو نه شرمیږی خو زه چی دده سره ستا دروازې ته درځم شرمېږم .

ښاغلی [لایق]

# زهد شکن ښایست

ستا د حسن په سپېدو کښې، خوځېدلي زلزلې دي
د آسمان له سختې زړه نه پورته سوي ترانې دي

نه پوهېږم څه محشر دی ستا سترګو په ګردش کښې؟
چې یاران ئې نشه کړي بې د میو له پیالې دي

ستا د سرو شونډو له تاوه کباب سوي لړمونونه
دالاله دي که یاقوت دي؟ که سکروټې که لمبې دي؟

هر ښایست چې تجلي کړي زما په شعر او آند ښېنو کې
ستا د تیو یا د زلفو یا د سترګو کرشمې دي

ستا له هسې جلوې جار شم چې زاهد ئې په ملامات که
کړنګولي ئې جامونه ننګولي میخانې دي

څه به هڅه د طاعت کړم څه به هیله د جنت کړم
نه پوهېږم ستا په عشق کې توري سوې خاتمې دي

«لایق» دومره ساده نه دی چې د وصل تمه‌دار شي
ستا د غیرې په ارمان کښې ډ کې سوې هډیرې دي

---

ښاغلی [مسکین یار]

# رشوت خوره

په رشوت چې دی ګټلي سپېنې سرې دي — له دې ګټې نه معلومې خسارې دي
وسایل د نفاق غونډ دي په رشوت کې — ښکاره سوي د رشوت لوئې نخرې دي
د رشوت په تأثر نن په هېواد کې — په ژړا د مظلومانو سترګې سرې دي
قانوني حقوق ئې غصب په رشوت سي — در بدره ګدائي که ګذارې دي
چې مامور په مراعت دور ورګډ لوی سوی — فلسفه ده د اسلام نه مسخرې دي
ستا په خیال چې نه به عزل نه به مرګ وي — په نصیب مې ابدي د ابني دورې دي
ولې ډېر دي ما ليدلي ستا په شان نور — چې ناکام تللي په ډ کې هډیرې دي
په خپل غوږ د بل د مرګ افسانې اوري — په بل غوږ کې صبا ستا د مرګ نارې دي
اقتدار دی سعادت ګڼه حق بین سه — د عقبې چارې دلې کله دورې دي
خیانت د جا معې سره رشوت دی — [مسکینیاره] د رشوت در نې خطرې دي

مرحوم [خوشحال]

# پښېمانه عاشق

توره چې تېر یږي خو ګذار لره ګنه؟
زلفې چې ولولشي خو خپل یار لره ګنه

ولې راته وایې چې په ښکلو نظر مه کړه
سترګې چې پیدادې خو دیدار لره ګنه
شیخ دې لمونځ روژه کا زه به ډکې پیالې اخلم
هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره ګنه
تا ویل محما د خولې بوسه لکه دارو ده
غواړم دا دارو د زړه پرهار لره ګنه
وینې مې د زړه خوري مګر نورڅه لره نه دی
زړه محما پیدا دی تا خونخوار لره ګنه
څه ژړا فریاد کړې د شپې له تورو زلفو
ته ورتلې پخپله دې تورمار لره ګنه
خود به ستا ترمخه دګبا غوند څرګندشي
ګله دلاله راوړه خپل رخسار لره ګنه
مې شته چنګ و نې شته د خپل یار سره خوشحاله
خپل بیاض په لاس کښې څه ګلذار لره ګنه

---

# ملي اشعار

زړه مې هلك سو راته ژاړي
تو پردې پټې بیا بان غواړي دیداروته
د ګورستانه مې ګیله شي
څوانان خوندي کې راستوې تش پلنګونه

❁❁❁

طوطي به خدای په ګلوموړه کې
باغوانه ستا نیمګړی نیت مې ژړوینه
مرګیه! لږ تامل وکه
یومې څوانی ده بل مې ډېر دی ارمانونه

د ېلتانه په تاریکو کې
د تو کل څراغ په لاس در پسې څمه

❁❁❁

که لویې غواړې ځان کم ګڼه تر بله
بل تردا د پاسه نشته نصیحت
نورانی کا هغه ځای چې سره کښېني
دیر ینه څلور هوښیار په مشورت
بې جرګې نه به هیڅ کار په لاس وانخلې
چې خبردې د جرګې په برکت

ښاغلی [رشاد]

# قسم

په سوو کړېوو د فقيرانو
په تورو تپو د مسکينانو

په پټو لوږوو د کونډو رنړو
په مړاموا او ښکو د يتيمانو
په سړو آهو د اسکېرليو
په ځيرو ګرالبو د سيمو ګامو
په لځو خپټو د پر کټيو
په ډېلو پونډو د بېکسانو
په بدو ورځو د افتاده وو
په تشو لاسو د ناتوانانو
په سختو زمو د بې توبه وو
په وږو ګېډو د بېوزلانو

په وچو شونډو د پور وړو
په کړو غاړو د محتاجانو
په کښېتو سترګو د درد منډانو
په ماتو زامو د عاجزانو
په سړو ساړو د کاريګرو
په ستړو تلو د مزدورانو
په ړنکو زړونو د ارمانجنو
په ماتو خوا او د محرومانو
ستا سو قسم وه په دولت مستو
لږ رحم و کړئ په غريبانو

---

ښاغلی خيال الدين [سنګر]

# خوښ يمه

زه لکه مجنون په صحرا خوښ يمه
نه يمه غني نه سيم او زر غواړم
زه خو نرګس نه يم ما ليار څه په کار
راز د ياراني خو پټوی نشم

ځيري ګرېوان تل په ژړا خوښ يمه
زه د يار په عشق کښې ګدا خوښ يمه
تل لکه غاټول په صحرا خوښ يمه
سر په دار منصور نه رسوا خوښ يمه

کاشکې ريز مريز له وينو ډک شمه
ما د خپل ځان واك ورته سپارلی دی
څه به وی وفا د خار او ګل سره
دود که سپېڅلی شم دا می فخر دی
نه غواړم امان چی ورنه خلاص شمه

لاس وينو د يار ته حنا خوښ يمه
زه د خپل آشنا په سلا خوښ يمه
دی وفا نه زه په جفا خوښ يمه
سل وار له محبوبی فدا خوښ يمه
تل د يار په غم مبتلاء خوښ يمه

زه «سنګر» پتنګ مين په شمع يمه
سوی سوخته عشق کښې جليا خوښ يمه

# برنارد شاو

د ۱۳ مخ پاته

ولوېدى او څرنګه چې پدغو ورځو کې ئې دغوښو خوړك پرېـ ايښى او د سبزيجاتو په خوړلو ئې پيل کړى ؤ .

نو ځينو کوتاه فکرو کسانو دده برى د وښو له خوړلو څخه اټکلاوه .

شاو کوښښ کاوه ثابته کړى چې دوى اشتباه کوى خو دده ددې حقيقت د ثبوت دپاره ئې کوم فرصت نسواى پيدا کولاى

ترڅو په لومړى بين المللي جنګك کې د انګلستان خلـګك مجبور شول چې وابښه وخورى پدې وخت کې شاو فرصت غنيمت وبللى او داسې ئې وليکل :-

«په نړۍ کې په مليونو افراد سته چې وابښه خورى خو برنارد شاو يوسړى دى » زما په وښو کې يوه عجيبه نښه سته او هغه

داچې حوادث وماته په يوه بل ډول ښکاريږى يا په بل عبارت زما درد، خوښى ، تبه ، يخ او حتى عشق له نورو سره توپير لرى .

واقعـاً همداـى وه ځـکه برنارد شاو پـه خپلو روښانـه سترګو لوړاوپراخ تندى اوګڼه ږيره سره و نجونو ته مخصوصه جاذبه درلوده، خوده هيڅ پروا نه په کول .

وروسته شاو په ايـوتـسن- لورانس کې ژوند کاوه د بېلو بېلو خلګو سره ئې په تماس کې کېدى او مسافرت ئې هم ئې کاوه

خو سره د هغه ئې هم مصر او امريکاته مسافرت وکړ .

کله چې وامريکاته ورسېده د وررسېدلو سره سم ئې دامريکا په ريشخند باندى شروع وکړه او وې ويل :-

« زه نه پـوهېږم چې پـه انګلستان کې ولې خلګك دامريکا دليدلو هوس کوى زه په هغو مسخرو کې چې کو ميك جنبه ولرى استاد يم خو اشتهار مې دومرى زيات نه دى چې ولاړ سم او دآزادۍ مجسمه وګورم».

شاو عـادت درلـود چې و خپلې هرى نمـايشنامې ته يوه مقدمه وليکى اودغه مقدمه دده دافکارو روحى اوفلسفى نښانى وه .

دده نمايشنامې په لاندې ډول دى :

« سړى او برتر، کانديدا، د سرنوشت سړى، د ميرمن وارن کسب، .. دشيطان شاګرد ، سزار او کلئو پاترا، فاژور، بار- بارا اود لوى کاترين واده کول .

شاو دخپل ژوند فلسفه دسړى او برتر په نمايشنامه کې ښکاره کړېدى .

جرج برنـاردشاو لوړ ايـرلنډى ليکوال دى چې په انګليسى ادبياتو کې ئې لوړ مقام درلود .

ده تر ۹۴ کـاله ژوند وروسته په ۱۹۵۰ کال کې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې .

## کـــار

په دنيا کې تردې بل بد شى نشته چې انسان خپل وخت چټى تېر کړى ځکه په بيکارى سره دانسان مغز خپل ځان خورى، پدې سبب پوهاندا نـاروغى د انسان له بدو آفتو څخه بولى .



### رښتينتوب

رښتين توب د بشر د ښو اخلاقو چينه ده ځکه دراستى سره ښه کارونه او لوړى طبعى ملګرى دى له دې سببه ئې ويلى دى :« و زوى ته دى راستى ورزده کړه چې دى ټوله فضايل زده کړى» .

د [مترلنګ] له افکارو څخه — ژباړونکی [غرزی]

# زموږ کارونه

آیا لیدلي یا اورېدلي به مو وي چې ډېر خلک د خوب په وخت کې له ځای څخه ولاړېږي او د خوب په حال کې ډېر کارونه کوي چې د وېښتیا په وخت کې ئې هیڅ نه وي په یاد او نه پوهېږي چې څه کارونه ئې کړېدي.

موږ هم په ژوند کې ددغسې خلکو په ډول یو او ټول کارونه چې کوو کور-کورانه، سطحي او د خوب له حاله دي.

زموږ کارونه که لاسي وي او بېله فکر څخه ئې په عادتي ډول په لاس اجرا کړو یا فکري او رياضي کارونه وي چې د پای ته رسولو دپاره ئې د مغز ټول قوت په کار واچوو، بیا هم سطحي او د خوب د حال په ډول دي.

پدې وخت کې چې تاسې دا کرښې لولې، که څه هم ستاسې ټوله توجه دې تورو او کرښو ته وي، خو بیا هم په یو مبهم ډول احساسوې چې ستاسې فکر بل ځای او بل شي ته متوجه دی چې نه پوهېږې څه شی دی او ددې سره هغه شی تاسې ته تردې کرښو ډېر مهم ایسي.

✡✡✡

## نن او پرون

زه ګرسره د خپل عمر د تېرو سوو ورځو څخه متأسف نه یم ځکه پوهېږم هره ورځ چې له لاسه وځي برعکس ددې چې په ظاهره ښکاره کېږي، ما هغه ورځ ضبط او تملک کړېده.

که زما د راتلونکو ورځو شمېر کرار، کرار لږېږي په عوض کې مې د تېرو ورځو شمېر ډېرېږي.

دا باید هېره نه کړو چې تېري سوي ورځې تر راتلونکو ورځو ډېر موږ ته ارزښت لري ځکه راتلونکي ورځې تر اوسه زموږ په تصرف کې نه دي او په موږ اړه نلري، خو تېرې سوې ورځې زموږ دي او په موږ اړه لري.

✡✡✡

## الکتریسیته

د جسم او مادي فکر د دوی الکتریسیته (برېښنا) ده لکه د انسان فکر چې هم د انسان الکتریسیته ده.

✡✡✡

## د عمر لنډوالی

سره ددې چې زموږ د عمر دوره ډېره لنډه ده ددرو دوې برخې ئې پدې کې راڅخه تېرېږي چې د وخت له سستوالي څخه ناخوښه یو چې وای ژر نه تېرېږي.

شپه او ورځ موږ ته ډېره اوږده ایسي او تل غواړو چې نن تېر سي او بیا راسي.
ته وا مرګ ته مو وعده ورکړېده چې تر وسه، وسه ئې ژر لیدلو ته ځان ورد سوو.

## راستي

له راستي څخه شجاعت وظیفه پېژندل، ټینګښ‌والي په کار پیل کول، وفا، د خبرې ښکاره کول، پر نفس باندې اعتماد کول، لوسینه، اغماض او پر ګناه اقرار کول چې انساني فضایل دي، پیدا کېږي.

د [یوسفي] ژباړه

# په جراحي کې د بېهوښۍ د غازو ګټې

که څه هم د جراحي عملیات د ډېرو وختو راپدې خوا د مریضانو په مخکې استعمالېدل اما ویلای سو چې اکثره ددې عملیاتو څخه اطمینان بخښه نه وه اوډېر لږ ئې مثبتې نتیجې ورکولې.

۱۹ پېړۍ چې د هره پلوه د تجدد او رنسانس دوره شمېرل کېږي پدې برخه کې ئې هم لوی، لوی ګاموونه واخیستل نوی آلې، سامانونه او پوه ډاکتران پیدا سول چې ددې ټولو علتو چاره ئې وکړه

باید متیقین اوسو چې هیڅ کار بېله رېړو او زحمت تېرېدلو خپل صحیح او اساسي شکل نه دی غوره کړی مثلا څه وخت د مخه دا ډېر مشکل کار معلومېدی چې عملیات دی تر څو محدودو دقیقو اضافه دوام وکړي او حتی اکثره ډاکتران به په خپلو اولینو آزموینو کې چې د دوی څخه به غوښتل کېدل د منځه تلل او د ناکامیو سره به مخامخ سول.

د ۱۸۰۰ ع کلو په حدودو کې ښاغلی همپری ډېوی د بې هوښۍ غاز کشف او منځ ته را وایست او په خوږه لهجه ئې اظهار وکړ.

چې دا غاز او ماده به د ډېرو خلګو او مریضانو پر زخمونو باندی مرهمونه کېښېږدی.

پسله ۴۰ کالو تېرېدلو څخه نور ګټور غازونه لکه چې یو له هغو څخه د خوښۍ او خندا غاز دی په لاس راغی.

په ۱۸۴۲ کال کې امریکائی ډاکتر «لانګ» دا غاز پر یوه مریض باندی چې په یوه غمجنه ناجوړۍ مبتلا ؤ او پر یوه بل مریض چې د پښو ناخوښۍ ئې لرله عملي کړ، او مثبته نتیجه ئې څخه ئې واخیستل. یو کال وروسته ښاغلی جیمز [سیمپسن] د کلوروفورم د بېهوښۍ د مرکباتو سره مخامخ سو، او دا غازات ئې دیوې ډېرې سختې مریضۍ په اصلاح کې چې هغه د زېږېدنې مرحلې وی په کار واچاوه. څه وخت د مخه کوم شی چې د جراحي عملیاتو په مقابل کې په کلکه مجادله کول هغه د زخمو وروستوالی او خرابی وه چې دا مضر مکروبونه د زخم له لاری داخلېدل او پسله لږ وخت به علاوه تر هغې ناروغی ناجوړه نوری مریضۍ هم پیدا

کولې او د لومړی ځل دپاره د ناپولیون جراح د جنګ په میدان کې د څه نور موادو په کومک عملیات وکړه او نتیجه ئې منفي را-ووتل ځکه چې ۱۰۰۰ مریضان

مړه او یو ډېر لږ خلګو صحت ومونده پدغه وخت کې علاوه پر دغه د خلګو او پوهانو نظریات د مکروبو و لورته نه وه جلب سوی، خیرن کالی او آلات به ئې استعمالول حتی دیوې جوړې کالی به اغوستل او به ئې د ډېرو مریضانو

عملیات اجرا کول کومې محدودې آلې چې به موجودې وی هغه په هغه چټلو ډولونو استعمالولې

د حفظ الصحی او تندرستۍ مراعات ئې نه درلود اما اوسنی ساینس ومونږ ته دا تلقین وکړ چې د مخه د ناجوړېو تر پېښېدلو باید د خپلې تندرستۍ مراعات

وکړو څه وخت وروسته محدود خلک د دغو حقایقو سره آشنا شول مگر بیا هم دوی تر ترټنې لاندې ؤ او

د عوامو له لوري به تل دوی ته بد ویل کېده چې حتی اوس هم خلک د حفظ الصحو مراعاتو ته پام لرنې نلري

مگر باید د زخم د پیدا کېدو په وخت کې د ډېر احتیاط څخه کار واخیست سي څو مکروبونه داخل نسي

همدا ډول کومې برخې چې ما تې سي باید په ټینګ ډول سره وساتل سي او د هوا ورتنوتلو سره مجادله

وسي او موږ کولای سو چې په آسانی سره مات بندونه د «کاربالیك» په ذریعه پیوند کړو د مکروبو او

بکټریا بریالی موادو د مجادلې په لړ کې د نباغلي «پاستر - کا»، چه او لسټر» کوښښونه د یادولو وړ دي

او نوع بشر باید همېشه ورته د قدر په سترګه وګوري

انسانانو ته ور وښوول چې مکروبونه په مساعدو ځایو کې ژوند کوي.

که چېرې پر دوی باندې د ژوند دائره تنګه کړی دوی و فرار ته مجبوره کېږي، په همدې اساس د ایشیدلو په وسیله خوراکي مواد او اوبه تعقیم کېدای سي او ځینې نور پوډرونه

او مواد ئې منځ ته راوړل چې د دغو مضرو موجوداتو موجودیت د منځه وباسي چې نن ورځ ټول روغتو-

نونه د ډاکترانو او مریضانو کالي په خلاصه هوا کې ترحرارت تېروي تر څو له مکروبو څخه خلاص شي.

د فدامحمد [خواری کښ] لیکنه

# د نن ورځې فلسفې ته

## یوه نوې کتنه

عوام وایي: فلسفه یو خیالي او یو ټوپیانی ټال دی چې فیلسوف د خپلو تصوراتو په زانګو کې زنګوي، اما برعکس فلسفه یوه ډېره ارغوني پوهه او د واقعیت پېژندنې یوه ډېره پخوانۍ وسیله ده.

که موږ خپل شاوخوا کائناتو ته لږ نوکې په غور وګورو ډېر عجیب و غریب شیان وینو دا ټول له شیان چې موږ ئې را احاطه کړي

یو د بې نهایته کائناتو یوه برخه او د ناپایه جهان یو کنج دی، دا ټول شیان وچ او لاند ه، سپین او تور، پورته او کښته، نوي او زاړه ښایسته او بد شکله بېل شیان لیدلای شو، او علاوه پردې ژوندي او بې ژونده اجسام، روح لرونکي او بې روح جسمونه متفکري او غیر متفکر شیان پدیدې هم وینو.

دا ټول له شیان موږ به یوه کلي ډول پر دوو عمومي برخو وېشو:

۱. مادي شیان او پدیدې

مادي شیان موږ په ساده ډول داسې تعرفولای شو:-

«ټول هغه شیان او پدیدې چې په عین ډول موجودي وي او د خپل موجودیت د پاره د انسان ومغز او شعور ته اړتیا ونه لري مادي شیان او پدیدې بلل کیږي.

لکه بېل بېل مځکنی اجسام او سماوي اجرام چې موږ او تاسې ئې هر یو مختلف رقمونه پېژنو.

۲. معنوي شیان او پدیدې

د انسان په شعور کې موجود شیان چې پخپله د یوه انسان د روحي فعالیت برخه ده معنوي پدیدې بلل کیږي لکه فکر، شعور احساس او داسې نور.

دا پدیدې یوازې په ذهني او معنوي جهان پورې اړه لري او کوم «اوبجکټیف» واقعیت

نه لري.

د ټولنې نړۍ د فلسفي تحقیق اساس هم، همدغه ځای نه څخه را شروع کیږي.

د تاریخ په جریان کې هرو خاصو اجتماعي اقتصادي او محیطي شرایطو د ځانه سره نوی، نوی

فلسفي ساختمونه او سیستمونه راوړي دي خو نو موړي ګرده فلسفي سیستمو ټوله پردې خبره بانده ولاړ دي چې د فلسفې و اساسي مسئلې ته څرنګه جواب ورکوي؟

د فلسفې اساسي مسئله هماغه د مادي د وجود سره د تفکر او روح رابطه ده.

او ددې خبرې سپینول دي چې آیا دغه ټول انساني تفکرات او تصورات د مادي دنیا او عیني واقعیت محصول او انعکاس دي که بالعکس؟

بله خبره چې د فلسفې د اساسي مسئلې دوهمه برخه تشکیلوي داده چې آیا جهان د پېژندلو وړ دي او که نه؟ آیا انساني تفکر او تعقل د جهان او طبیعت له مخې پرده پورته کولای شي که یا؟ آیا موږ د طبیعت د تکامل د قوانینو، د کشف توان لرو که نه؟

د فلسفې تفکر تاریخ ددې خبرې ښکاره شاهد دی چې د فلسفې د اساسي مسئلې د حل څخه پرته د نورو عمومي مسایلو لکه د کائناتو وحدت، د طبیعت او بشري ټولنو د تکامل د قوانینو

د عمومي او خصوصي خصلت او بالاخره د جهاني پدیدو د هیڅ ډول تشریح امکان نشته.

هغه فلاسفه چې مادي جهان او واقعیت د فکرونو او تصوراتو سرچینه ګڼي د فلسفې و اساسي مسئلې ته مثبت جواب ورکوي. او

د علمي واقعیتونو په درک سره جهان یو دایمي او عیني واقعیت بولي.

ددوی په عقیده، شعور پخپله د عیني جهان د پرله پسې تکامل محصول او د یوه ډېر سره پرله پېچلي مادي جسم خاصیت دی

لکه د انسان ماغزه. خو کوم فلاسفه چې فکر او شعور د عیني جهان بنسټ شمېري د ایډیالیسم ډله جوړوي او ددوی په عقیده

شعور تر جهان تر مخه موجود، د مادي جهان زېږوونکی دی او یا په بل عبارت شعور د وجود سرچینه او اصلي بنسټ دی

واقعیت پال فیلسوفان وایي: دا جهان د پېژندلو وړ، او انسان پخپله د طبیعت قوانین نه یوازې کشف بلکه په کار هم اچولای شي

> «له هرې خوا»
>
> ## آیا پوهېږې؟
>
> چې: پوهان د یو لړ علمي څېړنو په اثر دې نتیجې ته رسېدلي دي چې د شمالي قطب له لوېدیځې
>
> خوا څخه د الاسکا و خواته مخکښې ځي.
>
> نوموړو پوهانو داسې استنباط کړیدی چې دغه کار د ځمکې د ګرزېدو د لړزېدا په اثر صورت مومي.

ددوی په عقیده عملي کار او په اجتماعي حرکت کې فعاله برخه اخیستل د ټولنې په پرمختګ او د یوه جریان

په منځ ته راتلو او بریالیتوب کې اساسي رول لري.

برعکس ایډیالستان عقیده لري چې جهان د پېژندلو وړ نه دي او انسان د اجتماعي تکامل د قوانینو د پوهېدلو توان نلري.

مشهوره مقوله ده چې وایي: «د فلسفې تاریخ د ایډیالېزم او ماتریالېزم د متضادو سیستمونو د مبارزې تاریخ دی». پاته لري

سردارشاه [خلیق]

# رقابت ښه او خـــــــــونه هم لري

رقابت یوه عربي کلمه ده چې په دري کې ډېره مستعمله او په پښتو کې هم ویل کیږي.

دلته د رقابت د کلمې په شاوخوا کې زموږ بحث ځکه شروع کیږي چې ځینې خلک ورځه په پښتو کې بېځایه او بې موردة تعبیروونه اخلي او هغه د بدی او دښمني په معنا را اړوي، حال دا دی چې رقابت ښه او خونه هم لري لکه: تجارتي، سیاسي او نور رقابتونه.

مثلاً دیوې ټولنې په ژوندانه کې دا سې وخت راځي چې د ولس په حیاتي اړتیاوو کې لړوالی محسوس شي پدغه وخت کې یوه ټولګې محتکرین غواړي چې دقوم د دغسې ضرورت څه بده ګټه وکړي.

مګر یو بل وطن دوست سوداګر غواړي چې د دغه ناجایز عمل سره رقابت وکړي او د غلو د بازار مخه په محیط کې ونیسي، او په برابره بیه د ماغه مواد عرضه کړي.

یا یو شاګرد غواړي چې د خپلو هم صنفو ملګرو سره په تعلیم کې رقابت وکړي او د کوښش له لاري خپله تعلیمي سویه د یوه ټولګي له نورو شاګردانو څه لوړه کړي، یا یو غریب دوسته دنیادار سړی د نورو ظالمو شتمنو په نسبت د جامعې و مظلومانو او خورانو ته د زیاتې خیررسانې مصدر شي.

د غریبانو، مظلومانو، بېوزلانو، او محتاجه خلکو سره وخت په وخت مرسته کوي، نه غواړي چې په کوڅو او یا په بازارونو کې خپل د سوال لاس ونه وخپل او پردي ته اوږد کړي.

دا راز رقابتونه او سیالي جایزې او درستې دي او هر سړی یا مؤسسه او دولتونه مجاز دي چې د داسې رقابتونو احساس ولري بلکې رقابت دی چې د اجتماعي مؤسسو د لوړتیا او د تعلیمي استعدادونو (د ارتقا سبب سویدی) رقابت دی چې موږ یو له بل نه پخپلو وظایفو یا د مسالکو په مخ بېولو کې ښه او زیات موفق کېږو.

رقابت دی چې زموږ د مدني تحولاتو عامل ګرځېدلی دی دا چې ځینې خلک پدې عقیده دي چې رقابت حسد او دښمني ته وایي

او یا ئې یوه بده سیالي ګڼلې ده.

دوی په مطلق ډول خطا سویدی، او دغه تعبیر هم د رقابت د کلمې د پاره سم نه دی، بلکې پخپله د کلمې د معنا او مفاهمو له کبله چې: دښمني، کینه، حسد، او عناد ورته وایه شي له رقابت سره زیات توپیر لري، بلکې دا جملې ټولې بد و معناو ته شاملې او مطلق شر او ضرر ته راجع دي.

«الپېن» د میلاد په دریم قرن کې رومي نامتو فاضل پخپلو نظریاتو کې پدې زور اچولی دی چې متقابل محبت د هر نوع سره کومک د طبیعي حقوقو ښسټ او د اجتماع تاداب دی. او هر کله چې څوک ددې نه انحراف کوي هغه د طبیعت د قانون په نزد مسئول او د اجتماع دښمن دی.

«الپېن» رقابت پدې معنا چې افراد یو له بله زیات خپلې نوعې ته د عالي خدمت مصدر سي او د رقابت له لارې د ناوړه او بدو چارو او هم ملکو سره مجادله وکړي

بنه بللی او رقابت ئې په اجتماعي امورو کې عموماً او په انفرادي چارو کې خصوصاً لازمي او دهرچا فطري غريزه بولي او بدبين او خاص خودپرست خلک چې حاسدين او کينه ګر دي داجتماع دښمن اود متقابل محبت ته منجر او معرفي کوي. رقابت په عرف او مدني حقوقو کې هغه سيالي ده چې د کار، فعاليت، ايثار او زحمت روح په اشخاصو کې قوي کوي، چې په نتيجه کې ورڅه څوک دسرېتوب او

شرافت لوړی پوړۍ ته رسېدلي دي او څوک دسرمايې او پانګې د ډېروالي له کبله په نورو مالداراتو، مترقي سوي، يادفضل او کمال له حيثه نابغه او نامتو سويدي . داوړ رقابتونه جائز اود دنيا د فعاليتو نو او پرمختګونو اساس هم پدې اساس روان دي.

نو بايد چې د رقابت احساس ته بد و نه وايي، که رقابت ته بد ويلای شي يا دا کلمه مجرده وبولو اودعامه مصالحو دپاره ئې بده وګڼو نو دټولو څخه اول بايدموږ ددنيا دجامعو مختلفو سياسي ډلو ته په ټولنو کې قايل نشو اود ډلو رقابتونه بد وګڼو، لکه د

انګلستان په شاهي مشروطه رژيم کې « د کارګرو او محافظه کار د سياسي ګوندونو رقابت» يا په امريکا کې د«ډيموکرات» اود«راديکال» سياسي ګوندونه چې يو دبل رقيبان دي دواړه ګوندونه د امريکا او انګلستان مليونو دخپلو مصالحو دپاره دمدني يا موضوعه حقوقو په ايجاب کې تشکيل کړيدي.

آيا موږ دلته دامريکا يا انګلستان دمعتبرو سياسي ګوندو ترمنځ په رقابت قايل يو او که نه؟

که قايل يو نو آيا رقابت بد دی؟ هغه هم پداسې حال کې چې دا ګوندونه خپل رقابت پداسې يو ترتيب سره مخکې بيايي چې تصادم ئې په منځ کې نه واقع کيږي اود خپلو حرکاتو عکس العملونه دټولنې وقضاوت ته سپاري، او په پای کې چې دهري ډلې نظريه يا رايه غلبه ومومي هغه واک او اقتدار په لاس کې نيسي.

داوو د رقابت اصلي ماهيت چې د حسد يا کينې او دښمنۍ سره په مقايسه وی صورت وڅېړل شو اومعلومه شوه چې حسد، کينه او دښمنۍ د رقابت دمقالي ترعنوان لاندې نه، اود بشري مصالحو منافي دي.

او رقابت لازمي مفيد اولابدی شي دی په هرڅه کې چې وي. البته داعتدال له اندازې نه که رقابت واوړی نو بيا ددښمنۍ

او کينې، تباهي او بربادۍ په پوښ کې ننوزي چې نه يوازې د رقابت، رنګ او معنی تغير کوي، بلکې هرڅه او هرشی چې له اعتدال نه اوړي معنا او رنګ ئې تغير مومي.

لنډه دا چې رقابت د بدی دښمنۍ، خصومت په معنا نه بلکې د فن مسلك، مال او شخصيت دلوړوالي دحصول غوره ذريعه او وسيله ده.

## د غوښتنې منل

هرڅه چې له نورو څخه غوښتنه اړ وي دسړی وقار ډېر بړی که اجباراً غوښتنه پېښه سوه بايد دهغې په پوره کېدو کې اصرار و نه کړه سي څکه دهغه چا په حال چې غوښتنه څنې سوېده څوك نه دی خبر، ښايي چې يو عذر دی لري او ښکاره کولای دی نه شي، او که غوښتنه و منل سوه دا مينه هيڅ وخت بايد هېره نه کړه شي څکه هيڅوك دبل چا د غوښتنې په منلو نه دی مجبور.

ددې کال په دوبی کی احمد خارج ته تللی ؤ، د ده دخپل رانګك پـه وخت کی په لس پونیه یـو ښکلی او ښایسته ساعت اخستی او له ځانه سره ئې راوړی ؤ.

کله چی د احمد ملګرو په دفتر کی دده ساعت ولید نو دهغه داوصافو په بیانولو ئې شروع وکړه، او حقیقت

هم دادی چی د احمد ساعت ډېر ښکلی او مضبوط ؤ احمد هم ئه خپل ساعت سره ډېر خوشاله ؤ ځکه دده

ساعت برسېره پر دې چی ډېر ښایسته ؤ یوه ثانیه هم وروسته یا وړاندی نه تیږ، نو کله چی

به ئې له نورو ساعتونو سره مقایسه کړ بی نظیر او بی مثال به ښکاریده.

د احمد له رانګك څخه تقریباً یوه میاشت ووته خو دده د ساعت په هکله دخلکو

تبصرې ورځ په ورځ زیاتیږی

او حتی ځینی کسان پر ته له دې څخه چی د احمد ساعت ئې لیدلی وی له ځانه ډېر اوصاف د هغه له اوصافو

سره ضمیمه کوی او که کوم څوك کوم کار د اجرا لپاره

او یا د رخصتی به توګه په کوم سفر تللی وی چی نه له

له عربی منابعو څخه:

# اشتباه

احمد او نه ئې له ساعت څخه اطلاع ولری، نو د هغه د رار سېدو سره سم ئې نورو ملګری داسی خبری ورته کوی:

آیا د احمد ساعت دی لیدلی دی ؟

- ولی مګر هغه څرنګه ساعت دی ؟

- خیر، ولا ړ سه او وګوره چی په انسانی مصنوعاتو کی یو عجیب او خارق العاده شی دی.

- دغه ډول دی؟

هو ! د ده ساعت پر ته له دې څخه چی ثـانیه، دقیقه او بجه معلومـوی، دغـه رنګه: ورځ میاشت او حتی کال هم ښوولای شی.

ښه دا نو واقعـاً ډېر عجیب شی دی.

دا لا څه کوې چی هیڅ کوك ته احتیاج نه لری، بلکی پخپله په اتومات ترتیب سره چورلی.

اوه! اوه څو مره عجیب شی دی...

دغه رنګه د هـر ډول فشار سره مقاومت کوی او هم په اوبو او اور کی دلو پدلو څخه وروسته کوم ضرر نـه ور ته رسېږی او

برسېره پردې احمد د سهار دلمانځه لپاره له خوب نه راپاڅولی شی او هـم په تیاره کی رڼا او لمعان لری.

احمد هم دغه ساعت یوه ورځ دغرمی په وخت دمېز په خانه کی ایښی او خپله د لاس د پرېولو لپاره د باندی

وتلی ؤ، خو کله چی بېر ته راغی ساعت پخپل ځای کی نه ؤ.

ددې خبر د خپرېـدو سره سم د دفتر ټول مامورین وارخطا او پرېشانـه سول ځکه د احمد ساعت پر ټولو ګران ؤ.

په دفتر کی آرامی او کراری وه، هلته د غریبانو او بېوزلو وګړو د تګ او رانګك ځای نه ؤ، پدې دفتر

کی هیڅکله غلا نه وه پېښه سوی. ددې ځای مامورینو هـره ورځ خپلی کرتیه ایستلی او پر کوټ بندونو

باندی ئې ځـړولـی، سره له دې چی ډېر قیمتی شیان لکه پیسی، قلمونه او داسی نـور پکښی وه، مګر هیڅ

ورځ کوم شی نه ؤ ځنی ورك سوی، نو دا پېښه څرنګه نن وشوه او دا ساعت ولی ورك شو.

د دفتر مامورینو یو بل ته په ترخو ځېړو او زیږو رنګو کتل، د دوی په وجود کې وینه نه وه پاتې او تردې اندازې پورې ژړ ګرځېدلي وه چې تا به ویل ځول ئې و برق ته نیولي دي. دوی وروسته له دې څخه چې بېرته په خود شوه نو ئې سمدستي د هغو کسانو په یادونه شروع وکړه کوم چې دفتر ته د احمد د غیاب په وخت کې راغلي وه.

پدې کسانو کې «زمران» هم شامل ؤ. زمران د همدغه دفتر هغه پیاده ؤ چې همېش به ئې د ورځې په ۱۱ بجو د دفتر پر کارکوونکو قهوه وېشله او دا هغه وخت دی چې احمد له دفتر څخه وتلی دی، زمران راغی او لومړی پیاله ئې د «همام» پر مېز باندې کېښوه وله همام پدغه وخت کې له هغه بقال سره په تیلفون کې خبري کولې چې کور ئې د ده د کور په خوا کې ؤ همام د خپل هغه یوه زوی له صحت څخه پوښتنه کول چې ډېر سخت ناروغ ؤ، او ده به هره ورځ نوی دوا ورته راوړه او کله چې به دفتر ته راغی نو به ئې هر دم و همغه بقال ته تیلفون کولی ترڅو چې د ده ښځه او یا خادمه راوغواړي او د خپل زوی د صحت په هکله خبری ورسره وکړي. همام د ډېری دوا اخیستلو له امله پوروړی او قرضدار شوی وو.

د دغه دفتر درې تنه نور مامورین د خپلو کارونو په کولو بوخت وه چې نه له خپله ځایه خوځېدلی وه او نه هم په غلا پوهېدلی وه او یوازې هلته پدې پېښه خبر شول چې د آرشیف یوه تن مامور و دوی ته څو پاڼې مکتوبونه چې نوی وارد شوی وه راوړه.

د احمد د غیاب په وخت کې یو بل نفر هم دغه دفتر ته راغلی او بېرته وتلی ؤ، دا هغه سړی ؤ چې په معمولي ډول سره په میاشتې یو ځلي دغه دفتر ته راتله او د دفتر کارکوونکو ته به ئې دستمالونه، جرابې، قلمونه او نکتائي ګانې د «غزني» له بازار څخه راوړې، د دفتر کارکوونکو هم پر ده باندې شفقت درلود ځکه دی یو سپین ږیری سړی ؤ چې پخوا له دې څخه د دوی په څېر مامور ؤ، مګر کله چې متقاعد شو، نو ئې د خپل معاش د حاصلولو لپاره پدغه مختصر تجارت شروع وکړه، او ځینې دفترو ته به د خپل مال د خرڅولو په غرض راتی. دی یو صادق او امین سړی ؤ او له دوی سره به ئې په نقد، او پور معامله کوله مګر سره له دې ټولو اوصافو د دفتر د مامورینو پر ده ګمان د غلا راغی ځکه دی یو سوداګر سړی ؤ او ده ته د یوه ساعت غلا کولو څخه پداسې وخت کې چې هیڅوک متوجه نه وي او بیا د هغه خرڅونه کوم ګران او مشکل کار نه دی د دې قرائینو له مخې ئې سپین ږیری سوداګر متهم او سړی ئې ورپسې ولېږل.

سوداګر راغی، او کارکوونکو له ده څخه د ساعت غوښتنه وکړه، خو په ژړا ئې غوښتنه سره د سوداګر پر ځان لړزه پرېوته، او قسمونه به ئې خوړل چې نه مې دغه ساعت لیدلی، او نه مې اخستی دی، او نه به هم په آینده کې د دغه دفترو دروازې ته راشم، چې زه ئې پدې سپین ږیرتوب کې په غلا متهم کړم.

دوی وروسته له دې څخه د تهمت غشي و هغه مامور ته متوجه کړ چې له آرشیف څخه راغلی او مکتوبونه ئې د احمد د غیاب په وخت کې

ودغه دفتر ته راوړی وه .

په پای کی تهمت یوازی و «زهران» تـه متوجه کړ زهران یعنی هغه پیاده چی

همېش بـه ئي د ورځی پر ۱۱ بجو ددفتر پر کار کوونکو قهوه وېشله .

زهران په ټولو کی فقیر ای مسکین ؤ ، د دفتر خلکو پرده باندی سترګی سرې او دی ئي سخت تهدیـد کړ

خو زهـران ددوی ټـول تهدیدونه په شدت سره رد کړل . ددفتر له ماموریـنو سره بل هیڅ نه وه پاتی ځکه

دوی دخپلو مدعا د اثبات لپاره کوم دلیل پر زهران ندرلود ، ددوی ټولو په زړونو کی یو خجالت اوغم

پروت ؤ . دوی ټولو یو د بل ته د جرم په سترګه کتل که څه هم چی په ظاهره کی یوازی زهران متهم ؤ ، خو

په حقیقت کی د احمد سترګو و ټولو تـه تهمت متوجه کړی ؤ ، او دوی ئي کم له کمه پدې خـو مقصر ګڼل

چی د خپلو ملګرو د غیاب په وخت کی ئي دده پر مال پام نه دی کړی .

احمد هم په زړه کی په ښه خوله ژړل ، مګر څه به ئي

کړی وای ځکه چاره نه وه ، نو مجبور آئي ویل چی : زه ئي عوض له خپله خدای [ج] څخه غواړم .

پردې پېښی باندی څو ورځی تېری شوې ، د احمد دا خبره تر یوې اندازې پوری هېره شوه خو زهران بېچاره ته یو دایمی غم او روحی فشار پاتی شوه ، ځکه ده پخپل ۳۰ کاله ملازمت کی کله

داسی خبره نه وو اورېدلی ، او نه پدغه موده کی له دغه دفتره کومه پانه ورکه شوې وه . دی همېش پدې فکر کی ؤ او هرچیرته به ئي

دهغه پلټنه کوله ترڅو چی یوه ورځ د یـو تـاجـر چـې د ساعتونو تجارت ئي کولی ومو ند زهران ډېر خوشاله شو او هغه

ئي په هر قیمت چی ؤ ، تری واخست او ورو سته ئي نو د تجار سره ملګری شروع کړه ، او په ضمن کی ئي د هغه سړی اوصاف څېړنی و پوښتل

چی دا ساعت ئي پرده خرڅ کړی ؤ خو څه چی تاجر ورته بیان کړه معلوم شوه چی د ساعت غل همام ؤ همام یعنی هغه څوک چی پدغه دفتر کی مامور ؤ .

زهران دا خبره پټه کړه او ساعت ئي و احمد ته وسپارل .

زهران ښه پوهېدی چی پدې کار سره ئي پخوانی تهمت پر ځان ثابت کړ ، مګر سره له دې هم ډېر خوشاله دی ځکه ده هغه توره وریځ له ټول دفتر څخه لیری کړه

چی پر هغه ئي خپمه وهلی وه .

او کله چی له زهران څخه د ساعت او د هغه د ځای په هکله پوښتنه وشوه ، کله به چپ شو او کله به ئي له ځانه

یوه دروغه قصه ورته جوړه کړه چی دې خبرو هم پخـوانـی تهمت لا پسی زیاتوله ، خو زهران بیا هم

خوشاله ؤ ، ځکه چی ساعت وخپل اصلی خـاوند تـه رسېدلی وو .

د شنبې ورځ وه سهار دحاضری مهال ؤ چی همام له نورو کار کوونکو و دوسته په غمګینه بڼه د دفتر ته ننوت

او د خپل مېز په خوا کی ئي په ژړا پیل وکړه ... ده په ساه نیولی ږغ کی کـرار کرار له ځانه سره ویل :

زما یو زوی ؤ ، هغه هم مړ شو او ما پرون ښخ کړ هغه مړ سو خو هلته مړ سو چی حرامه دوا ئي ګیډی ته

داخله سوې وه . . ما و بخښه ای احمده ... ما عفوه کړه ای احمده ... زه مسکین یم .

ټول کار کوونکی دده وخبرو ته حیران او دده پر لوری متوجه ؤ ، او داسی

د پښتنی د ریم مخ کی

# پرشعر یو تحلیلی نظر

د دوهم مخ باته

سیاست کنلړو کیږوکی مرموز او پر له پیچلی رنګ واخیست څوداڅ چی دجریانا تو داو بنستنی په حکم په ادبیا تو او شعر کی هم نوی بدلون راغی .

په رومانتیک شعر کی هغه مهال چی دملی احساساتو په موج کی روان دی آتش مزاجی سته اودا برخه ئې دونه زیاته ده چی دوه لومړی اصلو نو ئې تحت الشعاع دی خو کله چی د اجتماعی جریاناتو فشار خپلی وروستنی نقطی ته رسیږی نو آتش مزاجی ځینی ځی او د ساده ګی او بسیطوالی ځای ئې دسمبولیزم بې حالت نیسی او دنفسانی لذت دمراعات پرځای دسوریالسم ذهنی وحشت شعر ترګوتو لاندی کوی.

بدې پسی نو هغه مهال چی ریالسم د رومانتسیزم دعکس العمل په شکل منځ ته راځی ، دتاریخ اوزمان جبر دا ادبی موسسه د ځای تابع کوی او دهغه د مختلفو ښاخونو په جمله کی پر شعر دا اثر لویږی چی دملتن درې سره اصله یکښی مراعات شی اودا نو لومړی محل دی چی د ملتن اصول په ریالستیک اسلوب کی ځان په کامل واقعیت څرګندوی .

کله چی په شعر کی دملتن درې اصله تطبیق شوه دامهال نو دشعر څخه دیوې عالی غایې په لار دیوې وسیلی په حیث استفاده وشوه او دا غایه نو دژوند لپاره دهنر استخدام دی چی د ټولنی دسیستم په کمال کی کارځینی اخیستل کېداې شي . «پای»

---

د ۲۸ مخ پاته برخه

ګمان به ئې کول چی دی د زوی دمرګ له کبله لیونی او د اعصابو په مرض اخته سویدی، دوی دده دخبرو په حقیقت نه پوهېدل .

زهران ددروازې په خوا کی ولاړ او د همام خبری اوری .

زهران دده دخبرو په معنا پوهیږی خو هیڅ نه وایی او چپه خوله ورته ګوری، دی نه غواړی چی د همام دا سهوه او لغزش ښکاره کړی او نه غواړی چی د زوی له غمه سره بل غم هم د همام په غاړه وا چوی .

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(AUGUST)1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: دطلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخی، اجتماعی، علمی، ادبی

اداره: دشهیدانو واټ

دتاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال پنځمه ګڼه

کالنی بیه

په کندهار کی [۴۸] افغانی

دهیواد په داخل کی [۳۳] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

پر له پسی ګڼه ۹۵

دکندهار دولتی مطبعه